ورځپانه

# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
دوشنبه د رمضان المبارک ۱۷ مه ۱۴۴٦ ق کال، د کب ۲۷ مه ۱۴۰۳ ل کال، د مارچ ۱۷ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵۷۰ یمه، پرله پسې ګڼه ٦٦۰ مه، اتمه دوره

امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | هفدهم |
| ایام | دوشنبه |
| تاریخ | ۱۴۰۳/۱۲/۲۷ |
| افطار | ٦:۰٦ |
| عشاء | ۷:۲۸ |
| ختم سحری | ٤:۳۰ |
| آذان فجر | ٤:۳۵ |

## د عامې روغتیا وزارت:
## د بې پولې ډاکټرانو وروستی راپور حقیقت نه لري

د عامې روغتیا وزارت د بې پولې ډاکټرانو له لوري په افغانستان کې د شري ناروغۍ په اړه ورکړ شوی راپور رد او خپاره شوي ارقام یې تخمیني وبلل. له دې وړاندې بې پولې ډاکټرانو په خپل یوه راپور کې ویلي و، چې افغانستان کې د شري ناروغۍ پېښې څو برابره زیاتې شوي او هره ورځ یو ماشوم د همدې ناروغۍ له کبله ژوند له لاسه ورکوي. د عامې روغتیا وزارت ویلي: د معلوماتو په اساس چمتو شوی راپور د حقیقي ارقامو په اساس نه، بلکې له تخمیني ارقامو په کې استفاده شوې. خبرپاڼه کې غوښتنه شوې، چې هر رسمي خپرېدونکی راپور باید د حقایقو او همغږۍ پر اساس وي، تر څو د خلکو... ۳مخ

## افغانستان پر هوايي دهلېز د ۲۹۲ میلیونو ډالرو په ارزښت صادرات او واردات کړي



د صنعت او سوداګرۍ وزارت پرون د یوې اعلامیې په خپرولو سره ویلي: افغانستان د روان لمریز کال پر مهال د کابل، کندهار او بلخ هوايي ډګرونو له لارې اُتریش، اردن، هسپانیې، متحده عربي اماراتو، اندونیزیا، برتانیې، امریکا، سویلي افریقا، جرمني، چین، هند او یو شمېر نورو هېوادونو ته صادرات او واردات کړي دي. خبرپاڼه کې ویل شوي، چې د روان کال پر مهال د هوايي دهلېز له لارې د افغانستان د صادراتو او وارداتو ټولیز ارزښت ۲۹۲ میلیونو ډالرو ته ... ۳مخ

## هیواد کې ۱۰۴۰۰ ښوونځیو ته ودانۍ جوړې شوي

د پوهنې وزیر مولوي حبیب الله اغا لغمان ته د خپل سفر په ترڅ کې د دې ولایت اړوند د پوهنې په برخه کې څلور اسلامي امارت د هیواد د پوهنیز پرمختګ لپاره بې ساري هڅې کوي. مولوي حبیب الله اغا زیاته کړې: لغمان ته یې د سفر



رغنیزې پروژې ګټې اخیستنې ته وسپارلې. په دې اړه جوړو شویو مراسمو کې نوموړي ویلي: موخه د پوهنې په برخه کې د شخصي پانګوالو هڅول او په دې برخه کې... ۳مخ

## تېره میاشت کې څه باندې ۲۰ زره جریبه دولتي ځمکه له غصب څخه خلاصه شوې

د عدلیې وزارت د تېرې یوې میاشتې په موده کې د هېواد په ۱۳ ولایتونو کې له غصب څخه د څه باندې ۲۰ زره دولتي ځمکې د خلاصېدو خبر ورکړی دی. یاد وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، چې د ځمکو له غصب څخه د مخنیوي تخنیکي پلاویو د ۱۴۴۶ هجري قمري کال د شعبان میاشتې په اوږدو کې په ننګرهار، کندز، جوزجان، فاریاب، تخار، دایکندي، غور، خوست، نیمروز، پنجشیر، بادغیس، میدان وردګو او بامیانو



ولایتونو کې ۲۰ زره ۴۴۴ جریبه اماراتي ځمکه له بررسۍ او تثبیت څخه وروسته، استرداد کړې او اړوندو ادارو ته یې تسلیم کړې ده. د خبرپاڼې د معلوماتو له مخې، په دې لړ کې ... ۳مخ

## افغانستان ته له اقلیمي بدلون سره د مبارزې لپاره ۱۰ میلیونه ډالره بودیجه تصویب شوه

د چاپېریال ساتنې ملي ادارې، له اقلیمي بدلون سره د مبارزې لپاره افغانستان ته د ۱۰ میلیونو ډالرو په ارزښت بودجې د تصویب خبر ورکړی دی. باختر آژانس ته د چاپېریال ساتنې ملي ادارې د معلوماتو له مخې: یاده پروژه چې ارزښت یې ۹.۹۸ میلیونه ډالره دی؛ د نړیوالو چاپېریالي اسانتیاوو صندوق (جي‌اي‌اف) له لوري د کمو پرمختللو هېوادونو د صندوق (ال‌ډي‌سي‌اف) په شورا کې تصویب شوې ده. یاده پروژه به د پنځو کلونو لپاره په بدخشان او کونړ کې پلي شي چې موخه یې د ځایي ټولنو د اقلیم بدلون پر وړاندې د مقاومت زیاتول او



د هغوی د ژواندانه ښه کول دي.
د یادې پروژې چارې د ملګرو ملتونو سازمان د پرمختیايي پروګرام (یو‌ان‌ډي‌پي) له لوري، د چاپېریال ساتنې ملي ادارې او نورو اړوندو ادارو په همکارۍ ترسره کېږي.
ویل کېږي چې د یادې پروژې په پلي کېدو سره به، نه یوازې د چاپېریال وضعیت ښه شي، بلکې د ځایي ټولنو د ژوندانه وضعیت به هم ورسره ښه شي.

## د ځانګړو ځواکونو فرقې له ۵ مې ښوونیزې دورې څخه ۵۱۳ تنه فارغ شول

د ملي دفاع وزارت خبر ورکړی، چې د ملي اسلامي اردو د ځانګړو ځواکونو فرقې له پنځمې ښوونیزې دورې څخه ۵۱۳ تنه فارغ شول. د خبر له مخې دغو فارغینو ته څلور میاشتنۍ عقیدوي، ځانګړې سختې کماندويي او پرمختللې پوځي زده کړې ورکړ شوې دي. د ملي دفاع وزارت لوی درستیز قاري محمدفصیح الدین فطرت د فراغت دغو مراسمو کې ویلي: ... ۳مخ

## د قوشتېپې کانال د لومړي او دویم فاز پرمختګ د پام وړ وبلل شو

د قوشتېپې کانال د تخنیکي چارو د پرمختګ د ارزونې تخنیکي عمرې په مشرۍ جوړه شوه. په دې غونډه کې د ټولګټو



غونډه د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ د وزیر مولوي عطاءالله چارو وزارت مرستیال مولوي عبدالکریم فاتح ... ۳مخ

## د کډوالو نړیوال سازمان په جبر د افغان کډوالو پر ایستلو اندېښنه ښودلې




افغانستان کې د کډوالو نړیوال سازمان مرستیالې موتیا مسکون د کډوالو چارو وزیر مولوي عبدالکبیر سره له ګاونډیو هېوادونو په جبري ډول د افغان کډوالو په ایستنې اندېښنه ښودلې. د کډوالو چارو وزارت ویلي: دې کتنه کې موتیا مسکون روان کال کې د یاد سازمان کاري پلان له دوی سره شریک کړی او په جبري ډول یې د کډوالو په ایستل کېدو اندېښنه ښودلې. نوموړي ویلي: هوډ لري کډوالو ته د اړینو نغدي او غیرنغدي مرستو پر رسولو سربېره له پاکستانه د کډوالو د نوي لړۍ له پیله وړاندې د اغېزمنو مرستو په موخه اسلامي امارت سره همغږي زیاته کړي... ۳مخ

## لوګر کې د یوې پروژې چارې پیل شوې

د لوګر د لوړو زده کړو موسسه کې د ۲۳ میلیونو افغانیو په لګښت د یوې پروژې چارې پیل شوې دي. د لوګر د لوړو زده کړو موسسې مطبوعاتي مسئول محمد نسیم ریحان باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي چې په دې موسسه کې د ۲۳ میلیونو افغانیو په لګښت د لیلیې ودانیو بیارغول، د خوړنځي او د یوه ګدام د جوړولو چارې پیل شوې دي. د نوموړي په وینا د یادې پروژې چارې به نږدې راتلونکي کې... ۳مخ

## ۲ کارخانه تولید بسکویت در میدان وردک افتتاح گردید

دو کارخانه تولید بسکویت از سوی سکتور خصوصی در میدان وردگ افتتاح و به فعالیت آغاز کرد.
انجنیر محمد خان خواک رئیس صنعت و تجارت میدان وردگ در گفتگو باخبرنگار آژانس باختر ایجاد این کارخانه‌ها را یک گام مهم و موثر در راستای توسعه اقتصادی در آن ولایت خوانده افزود که با آغاز فعالیت این کارخانه‌ها، همچنان زمینه کار برای شمار زیادی از جوانان فراهم شده است.
او از سایر سرمایه‌گذاران خواست که با درنظر داشت فرصت های فراهم... ۳مخ



## ننګرهار کې د موتیا ګلانو نمایشي قطعې جوړې شوې

د ننګرهار ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وايي چې د دغه ولایت په شېږو ولسوالیو کې د څه باندې یو میلیون افغانیو په لګښت د موتیا ګلانو نمایشي قطعې جوړې شوې دي.
د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رئیس مولوي محمد ولي محسن وايي ... ۳مخ





# د زېربنايي پروژو پراختيا؛ د اقتصادي خپلواکۍ پر لور ګام!

افغانستان، چې له اوږدو جګړو او سياسي بې‌ثباتۍ سره مخ و، اوس د اسلامي امارت په حاکميت کې د اقتصادي ودې او زېربنايي پرمختګ يو نوی فصل تجربه کوي. د سړکونو، بندونو، د اوبو لګولو د کانالونو او نـورو سـترو پروژو چټک ودانيـز بهير د دې هېـواد د اقتصادي خپلواکۍ پر لور ستر ګام دی. دا پرمختګونه نه يوازې د خلکو د ژوند په ښه والي کې مهم رول لري، بلکې افغانستان د زراعت، سوداګرۍ او انرژۍ په برخو کې ځان بسياينې ته نږدې کوي.

په هېواد کې د سـړکونو او لويو لارو پراخې پروژې، لکه د سالنګ لويه لاره او د کابل-کندهار سـړک د اقتصادي پرمختګ لپاره اساسي رول لـري. د دې لارو په جوړېدو سره به سـوداګريزه راکړه ورکړه اسـانه شي، د وارداتو او صادراتو لګښتونه به راکم شي او هېواد به له ګاونډيو سره د سوداګرۍ نوي فرصتونه ومومي.

همدارنګه، د بندونو او د اوبو لګولو د کانالونو جوړول د افغانسـتان کرنيز سـکتور ته حياتي ارزښـت لـري. د قوش تېپـې کانال، چې د أمو سـيند له اوبو څخه د زرګونه هکتاره ځمکـې د خړوبولو لپاره جوړېږي، د افغانسـتان کرنيز توليد ته نوې سا ورکوي. دا کانال به د غلو دانو، مېوو او سـبو توليد لوړ کړي او هېواد ته به د وارداتو اړتيا راکمه کړي.

د افغانسـتان د اقتصادي خپلواکۍ بله مهمه برخه د انرژۍ توليد دی. د کجکي بند، د بخش اباد بنـد او د نورو انرژي توليدوونکو پروژو پراختيا به د هېواد د برښنا اړتياوې پوره کړي. دا به نه يوازې د خلکو د ورځني ژوند اسانتياوې زياتې کړي، بلکې صنعتي سکټور ته به هم د ودې زمينه برابره کړي.

د دغو سـترو پروژو تکميل به د خلکـو د ژوند کيفيت ته ځانګړې پرمختـګ ورکړي. د زراعت وده به د خوراکي توکو بيې ټيټې کړي، سړکونه او ترانسـپورتي اسانتياوې به د سـوداګرۍ او سفر ستونزې کمې کړي او د انرژۍ پراختيا به د کورونو، فابريکو، روغتونونو او ښوونيزو ادارو فعاليتونه اسانه کړي.

افغانسـتان، چې کلونه، کلونه د جګـړو او اقتصادي انحصار له امله وځپل شـو، اوس د زېربنايي پراختيا له لارې د اقتصادي خپلواکۍ او پرمختګ په لور ګامونه اخلي. دا پروژې به نه يوازې د هېواد اقتصادي ځواک پيـاوړی کړي، بلکې افغانان به له بهرنيو مرسـتو او وارداتو خپلواک کړي. که د دې پروژو کارونه له پلان سره سم پرمخ ولاړ شي، افغانستان به په راتلونکو کلونو کې د زراعت، سوداګرۍ او انرژۍ په برخو کې د ځان بسـياينې هدف ته ورسېږي، چې دا به د يوه باعزته، خپلواک او سوکاله افغانستان د جوړېدو پر لور ستر ګام وي.

# د اسلام ضد افکارو تحليل او مخنيوی





**محمد قاسم عزام**

اسلام د انسـانيت د لارښوونې لپاره يو جامـع نظام دی، چـې په فردي، ټولنيزو، اقتصادي او سـياسي برخو کـې اصـول او ارزښـتونه وړاندې کـوي. د تاريخ په اوږدو کې، دا دين لـه مخالفتونو سره مخ شـوی، چې ځينې يې د ناپوهۍ، ځينې د تعصب او ځينې د شعوري دسيسو پايله ده. د اسلام پر ضد افکار مختلف اړخونه لري، چې له علمي، فکري، سياسي او ټولنيزو لارو خپرېږي. د دې افکارو تحليل او مخنيوی يوازې د احساساتي عکس‌العمل پر ځای، علمي، تمدني او فکري کار ته اړتيا لري.

اسـلام ضد افکار مختلـف لاملونه لري، چې يو له مهمو هغو يې ناسـم معلومات دي. ډېـر خلک، که عام وګړي وي يا زده‌کړيالان، د اسلام په اړه کره معلومات نه لري. دا ناپوهي د مختلفو عواملو له امله رامنځته شوې. د تعليمي نظام کمزوري، د مسـتندو سرچينو نشتون او د مغرضانه تبليغاتو پراختيا د دې حالت سبب شوي دي. تعليم د پوهې بنسټ دی، خو په ډېرو تعليمي نصابونو کې د اسلامي تمدن، د مسلمانانو علمي لاس ته راوړنو او د اسلامي ارزښتونو انعکاس ته پاملرنه نه ده شوې. ښوونيز مواد د لوېديځې نړۍ تاريخ تـه ډېر اهميت ورکوي، خو د اسـلامي تمدن هغه دورې، چې انسـانيت ته يې ستر خدمتونه کړي، لـه پامه غورځـول کېږي. دا تشـه زده‌کوونکـي دې ته رسـوي چې د اسـلام د فکر، تمدن او ارزښتونو په اړه ناسم تصور واخلي. رسنۍ د عامه ذهنيت د جوړولو يو مهم عنصر دی، خو ډېرې نړيوالې رسـنۍ اسلام ته د تعصب له زاويې ګوري. له لسـيزو راهيسـې د رسـنيو له لارې داسـې تصوير وړاندې شـوی چې اسلام ته يوازې د سـخت دريځـۍ، جګړې او شـخړو لـه اړخه کتـل کېږي. د اسـلامي تمدن تمدني او علمي لاس ته راوړنې، د شريعت د عدالت نظام او د اسلامي ارزښتونو جامعيت د رسنيو په بحثونو کې لږ مطـرح کېږي. دا حالـت په لوېديځو ټولنـو کې عام خلک دې ته هڅوي چې اسـلام له تاوتريخوالي سره وتړي او په اسلامي ټولنو کې ځينې خلک دې ته هڅوي چې د خپل دين پر ارزښتونو شکمن شي. د ناسـمو معلوماتو بل مهم لامل د کره ديني زده‌کړې نه شتون دی. په ځينو ټولنو کې، ديني زده‌کړه يا خو سطحي ده، يا داسې کسان يې وړاندې کوي چې د دين پـر ژور درک نه پوهېـږي. ځينې خلک د اسـلامي ارزښـتونو پـه اړه يوازې سـطحي معلومات لري، خو د فکري او علمي استدلال له پلوه نه شي کولای د ديني اصولو دفـاع وکړي. دا حالت ځينې کسـان دې ته رسـوي چې د اسلام د حاکميـت، عدالـت او ټولنيز نظام په اړه بېلابېلې او کله ناکله ناسـمې نظريې جوړې کړي. ناسم معلومات هغه تشـه ده چې د اسلام ضد افکار يې پياوړي کوي. دا تشه بايد د تعليم، مستندو منابعو او فکري وضاحت له لارې ډکه شي. اسـلام د علم، تحقيق او منطقي اسـتدلال دين دی او د دې افکارو د مخنيوي يوازينۍ لاره دا ده چې کره ديني پوهه عامه شي.

اسلام ضد افکار د بېلابېلو وسيلو له لارې خپرېږي، چې يو له مهمو هغو يې تعليمي نظام دی. په ډېرو هېوادونو کـې د تعليمي نصـاب جوړوونکي هڅه کـوي چې د اسـلامي تمدن، د مسلمانانو د علمي لاس ته راوړنو او د اسـلامي قانون د ارزښتونو يادونه ونه کړي. د تاريخ، فلسفې او ټولنيزو علومو په کتابونو کې د اسلامي تمدن هغه سترې لاسته راوړنې نه دي ځای پـر ځای شـوي، چې د انسـانيت د پرمختګ لپاره مهمې دي. د مسلمانانو پوهانو لکـه د ابن سـينا، جابر ابن حيان، فـارابي او ابن خلدون فکري ونډه کمرنګه ښودل شوې او پر ځای يې لوېديځ ته منسوب نظريات پراخ بيان شـوي دي. دا تشه زده‌کوونکي دې ته رسـوي چـې د اسـلام تمدني ارزښت سره بې‌پروايي ولري. رسنۍ د عامـه ذهنيت د جوړولو ځواکمنه وسـيله ده، خو ډېرې نړيوالې رسنۍ اسـلام ته د افراطيت، تاوتريخوالي او سخت دريځۍ له زاويې ګوري. د خبرونو، فلمونو او سريالونو له لارې داسې انځور وړاندې کېږي چې اسلام د سختو قوانينو، شخړو او بنديزونو نـوم دی. په فلمي صنعت کې، د يوه مسـلمان کرکټر عموماً يـا ترهګر ښـودل کېږي، يا داسې څوک چې د خپل دين له ارزښتونو تښتي. دا ډول تبليغات عام خلک دې ته رسوي چې اسـلام له تاوتريخوالي سره وتړي او هغه حقيقي ارزښتونه، چې د عدالت، سوله ييز ژوند او ټولنيزې همغږۍ ته ترجيح ورکوي، له پامه وغورځوي. په سـياسي ډګر کې، ځينې ځواکونه د اسلام د سياسي، ټولنيز او اقتصادي نظام د تطبيـق مخنيوی کوي. ځينې نړيوال قوانين او پاليسـۍ د اسلامي ټولنو پر ضد طرحـه کېږي، ترڅو مسـلمانان د خپل دين له اصولو لرې وسـاتل شي. د اسـلامي نظام د عملي کېـدو مخنيوی د دې سـبب شـوی چې مسـلمانان د خپلـو ټولنيزو او اقتصادي ستونزو حل د پرديو نظريو کې ولټوي. د اسـلامي نظام د نه پلي کېدو له امله، ډېرې مسـلماني ټولنې د خپلواک اقتصادي سيستم، عدالت محوره ټولنيز جوړښـت او اخلاقي ثبات له لاسه ورکوي.

دا وسـيلې د اسـلام ضد افـکارو د خپرېدو لپـاره کارول کېږي، خو د دې مخنيوی يوازې د علمي وضاحت، قوي تعليمي نظام او رسـنيز شـعور له لارې ممکن دی. اسـلام د فکري استدلال دين دی او د حقايقو روښانه کول د دې افکارو د له منځه وړلو له ټولو اغېزمنه لاره ده.

د بهرنيو فشارونو تر څنګ، په داخلي کچه هم ځينې افراد د اسلام د اصولو خلاف کار کـوي. ځينـې د پرديو نظرياتـو تر اغېزې لاندې د اسـلام د سـپېڅلو اصولو تحريف ته مخه کـوي. ځينې دا دين يـوازې د فردي عبادت تر کچې محدود معرفي کوي او د هغه ټولنيز، سياسي او اقتصادي اړخونه لـه پامه غورځـوي. ځينې بيا هڅه کوي چې اسـلام له سخت دريځۍ، جګړې او تاوتريخوالي سره وتړي.

د اسـلام ضد افکارو مخنيوی يوازې احساسـاتي غبرګون ته اړتيا نه لري. علمي، فکري او تمدني ... ۳مخ

# جهان در بحبوحه ی خود کامگی ها وبحران



**استوار**

نابرابری های موجود در جوامع بشری امـروزی پیوند وگره ناگسسـتنی به تک محوری هـا وخود کامگی های یکتعداد از کشورهای ابرقدرت و تک محور دارد. که این یکه تازی ها عامل اصلی یک سلسـله ناامنـی، درگیری و تقابـل میان یک تعداد کشـور ها گردیده است.

اگر از حقیقـت نگذریم در واقع هر کشور جغرافیای مشخص و حاکمیت مشـخص منحصر به خودش را دارد. بایسـته اسـت به حریم ،جغرافیا و حاکمیت کشـورها احترام متقابل و ارجگذاری صورت گیرد .

متأسفانه استند یک تعداد کشور های ابر قدرت وخود کامه که می‌خواهند جهان را به زعم و خواسـت خویش در استیلای خود کامگی داشته باشند. تشـکیل حلقـات وگروه هـا تحت عناوین مختلف، چون ناتو، شانگهای و... وجـود وشـکل گیـری همچو حلقـات وقدرت هـا در حقیقت امر انگیزه اصلـی نابرابری ودر گیری ها در جهان امروزی گردیده است .

بیگمان بحـران اقتصـادی در جهان به نحـوی از انحا روز تـا روز چاق وچاقتر می‌گردد کشـور های غربی کـه از بعد اقتصاد در وضعیت خوبی قرار داشتند، امروز در یک بحبوحه وتنگنای اقتصادی قرار گرفته اند که علت وانگیـزه آن در گیری های چند سـال اخیـر در میان کشورهاسـت.

بـه گونه مثـال جنگ میان روسـیه واوکراین بی نهایت تأثیر منفی بالای کشـور های اروپایی از بعد اقتصادی گذاشـته اسـت. بهای کالاها و مواد اولیه بالاگرفته است که نگرانی هایی را درقبال دارد.

از سـوی دیگر کشور های ابر قدرت در جهـان می‌خواهند تحمیل هویت نموده خواسـت و دیـدگاه خود را بر کشورهای ضعیف بقبولانند. البته بادر نظر داشـت منافع خویش و همچنان خود را وکیل وکفیل جهان می‌دانند. در حالی که هرجامعه و مردم آن نسبت به سرنوشت و منافع کشوری خویش دیدگاه مشخصی دارند. به گونه مثال: روی جنـگ و سرنوشـت اوکراین مذاکره صورت می‌گیرد، اما اوکراین از نشسـت و بحث نـاآگاه وحضور ندارد. چگونه ممکن اسـت راجع به چگونگی وسرنوشـت یک کشـور تصمیم گیری صورت گیرد و نماینده آن دخیل بحث در قضیه نباشد .

کشـورهای ابر قدرت چنان در قبال یک تعـداد کشـورها تصمیم گیری می‌نمایند که گویا صاحب و فرمانروای جهان اند. نکته دیگر اینکه شـورای امنیت سـازمان ملل نیز به اثر همین قلدری های خودکامه گان روز تا روز ارزش، اهمیـت و جایگاه خویش را از دست می‌دهد. زیرا در جنگ های اخیر میان فلسطین و اسرائیل روسیه و اوکراین رسالت و مسئولیت خویش را نتوانسـتند ادا کنند. مضاف براین هیچگونه تصمیـم وفیصله عملی به غرض سـد نمودن جنگ و بی عدالتی اجتماعی و انسـانی کرده نتوانستند.

آیا بیدادی که از سـوی نظام اشغالگر صهیونستی اسرائیل و حامیانش بالای مردم غزه صـورت گرفـت، فاجعه انسانی نبود، که بود. اما شورای امنیت سـازمان ملل در زمینه چه کار عملی نمود.؟

پس از سـالها ناامنی جنگ و دسـت درازی اجنبی ها بارویکار آمدن یک نظام اسـلامی در افغانسـتان و نفس کشـیدن آرام مردم به نحـوی از انحا مداخلات بیگانگان واجنبی ها تحت عنوان حقوق بشر و... ص۳

# جنګونه د څه لپاره!؟



**سالمزی**

کله کله ځينې استعماري او استکباري قوتونـه په نورو هېوادونـو کې او يا هم په خپلـو هېوادونو کې جنګونه جـوړوي او دا، چې دغـه جنګونه د کومو اهدافو لپـاره رامنځ ته کېږي؟ دغه هېوادونه مختلف دلايل لري چې ولې په نـورو هېوادونو کې جنګونه پيلوي يا ورته لمن وهي؟ دا ځينې لاندې مهم عوامل لري:

۱- سياسي او ستراتېژيکي ګټې: ځينې هيوادونه هڅـه کوي، چې خپل نفوذ پراخ او حکومتونه بدل کړي يا خپلې ګټې خوندي کړي.

۲- اقتصادي منابـع: ځينې جګړې د طبيعي منابعو لکه: تېلو، ګازو، قېمتي فلزاتو او داسې نورو لپاره کېږي:

۳-ايډيالوژيکي دلايل: ځينې هېوادونه د خپلـو ايډيالوژيکـې باورونـو د پراخولو يا ساتلو لپاره جګړې ته لمن وهي. لکه: د سـړې جګړې پرمهال د امريکا او شوروي اتحاد سيالي.

۴- امنيتي اندېښـنې: ځينې هېوادونه فکر کوي چې که بل هېواد کمزوری يـا بې ثباته شي، نـو دوی ته به تهديد پېښ کړي، نو ځکه مداخله کوي.

۵- پوځي، صنعتـي کمپلکس: ځينې اقتصـادي سيسـتمونه د جګـړې پر دوام ولاړ وي، ځکـه چـې وسـلې جوړوونکي او د دفاع سـکټورونه د جګړې له دوام څخه ګټه اخلي.

۶- تاريخـي يا قومي شـخړې: ځينې هيوادونه د تاريخي شـخړو يا قومي اختلافاتو لـه امله جګړې تـه ادامه ورکوي.

۷- د نړيـوال نفـوذ سـيالي: ځينـې زبرځواکونه غواړي خپل ځان پياوړی او سيالان کمزوري کړي، نو جګړې ته لمن وهي.

په لنډ ډول جنګونـه اکثره د قدرت، اقتصادي ګټـو، امنيتي اندېښـنو او سـياسي نفوذ لپاره ترسره کېږي، خو زموږ د سـياسي تحليل او اند له مخې دغه بوږنوونکي او تپل شوي جنګونه زياتره وخت د همدغو ښکېلاکګرو طاقتونو پـه ټوټه کېـدو او حتی په نابودۍ منتج شوي. د بېلګې په توګه پر افغانستان د شوروی اتحاد يرغل او د هغوی لـه لوري زموږ په هېواد کې د هغوی د کمونيستي مفکورې او او ايډيالوژۍ پر بنسټ د يو شمېر افرادو روزل او د هغـوی پرمټ افغانسـتان کـې جنګ جوړول او د شـورويانو مداخلـه او د هغوی پـه مقابل کې د افغان ملت ملي قيام او مبارزه او د لس کلـن مقاومت او قربانيو په پايله کې د شـوروي اتحاد ړنګېدل، په ويتنام کې د امريکايانـو يرغل او د امريکا ماتېـدل، همدارنګه پر افغانسـتان د امريکا په قيادت د ناټو ائتلاف پوځي يرغل او د شـل کلن اوږده جنګ په پايله کې د هغوی ماتـه، دا ټول هغه واقعيتونـه دي چـې هېڅـوک پرې سـترګې نه شي پټولی، خـو په ځينو وختونـو کې هغـه هېوادونه يا هغه ملتونه چې د قربانۍ جذبه او د آزادۍ احساس نه لري، په غلامۍ کې ښکېل وي او د تل لپاره د ذلت ژوند تېروي. زموږ ځينې ګاونـډي هېوادونه چې هېڅ تاريخ هم نه لـري او د افغانانو تـر واکمنۍ او قيادت لاندې راسـتر شـوي، پر افغان مؤمن او مېړني ملت د واکمنۍ او قيادت خوبونهويني او دا څلور لسـيزې زمـوږ په بې عزتۍ کې د خپـل عزت په لټه کـې دي او د افغانانو له تېـر تاريخ څخه پند نه اخلي، چې دوی يې له سره ښامار څخه وژغورل. دوی لاهم خپلو بې شرمانه لاسوهنو او هلوځلو ته دوام ورکوي او د افغـان اتل او قهرمـان ملت مخ ځان ته ورګرځوي. دوی ډېر داسې نه ښنونکي جنايات د افغانانو پر خلاف ترسره کړل چې مسـلمان، خو لا څه کوي، چې يو کافر يې هم له مسلمان سره نه کوي او حتی د خپل اقتدار او يـو څو ډالرو په مقابـل کې يې خپل مسـلمانان ورونه په شهادت ورسول، مدرسـې او جماتونه يې بمبار کړل او مسلمانان يې لاس تړلې امريکايانو ته وسپارل. داسې اسلامي او اتومي قوت څه پکار، چې پـرې د خپل ناموس، خاورې او مسـلمانانو ساتنه او دفاع ونشي. په پای کې د خوشحال بابا په دې بيـت د خپلـې دې ليکنې ځولۍ رانغاړم چې وايي:

لا تر اوسه يې ماغزه په قرار نه دي
چاچې ما سره وهلی سر په سنګ دی

# خبريال د هرې ټولنې د حقايقو رابرسيروونکی دی



**شاه محمود درريش**

خبريالي يا ژورناليزم په حقيقت کې يوه سـپېڅلې دنده ده چې په هره ټولنه کې د خلکو د هيلو او غوښتنو ترجماني کوي، نو هېره دې نـه وي چـې د ۱٤۰۳ لمريز کال د کـب يـا حوت مياشـتې ۲۷مـه نېټه د خبريـال ملي ورځ ده. دغـه ورځ دې لـه هـر څه لومړی د هېـواد ټولو خبريالانو ته ډېره ډېـره مبارکه وي، ځکه همدا خبريـالان دي چې دهېواد په ګوټ ګوټ کـې له هر ډول واقعاتو، پېښـو... څخه خلک په لومړي قدم کې خبروي اوهم دهېوادوالو ستونزې او غوښتنې په خپلو رپوټونو کې د حکومت د اړوندو مسئولينو او چارواکو غوږونو ته رسـوي، ترهغو چې د حل لپـاره يـې لازم اقدامات وکړي. البته همدا خبريالان دي چې د هېواد د چاپي، غږيزو او انځوريزو رسـنيو پـه اډانه کې خپلې چارې په پوره رښـتينولۍ پرمـخ بيايـي او پـه دې ډول پـه دوامـداره توګـه د ملت او دولت ترمنـځ اړيکي پال، نو په ټوله کې ويلی شـو رسـنۍ چې خبريالان يـې په ځانګړې توګه د خبري برخو پرمـخ وړونکې دي پـه حقيقـت کـې همدغه رسـنۍ د ولس ژبه ګڼل کېږي، ځکه رسـنيز بنسـټونه په اصل کې د خپل ملي رسـالت له مخې په ټولنه کې هر رازنيمګړتياوې، سـتونزې، خوالـې او ناخوالې را سـپړي، د خلکو حقه حقوق روښـانه کوي، خلك ملي يووالي تـه رابولي اوبالاخره رسـنۍ په ټوليـزه توګه د ولس دغوښـتنو ترجـماني کوي او پـه دې توګه د ملت او دولـت ترمنځ اړيکي پياوړې کوي، ترڅـو هېواد په مختلفـو برخوکـې پرمختـګ وکړي او وګړو ته يې هم له هره پلوه دهوسا ژوند زمينه مساعده شي. دیادوني وړ ده چې زموږ په هېواد کې اوسـمهال د ګڼ شمير چاپي اوغږيزو رسنيو ترڅنګ د پام وړ شـميرانځوريزې يعنې تلويزيوني شـبکې هـم فعاليت



لري، خو اسـاسي خـبره بيا داده چې په ټوليزه توګه ټولی رسنۍ بايد د اسـلامي شرعي اصولو او ټولنيزو دودونو اوغوره اسلامي حسـنه اخلاقو په چوکاټ کې د خپلوخپرنيـزو چارو په پرمخ بېولو کـې بايد تل ژمنـې پاتې شي اوهـم بايد تـل د ملي يووالي ټينګښـت تـه د خپلـو نشراتي لومړيتوبونـو په سرکـې ځای ورکـړي او له هر راز شـخصي ګټـو څخـه بايـد دوی ته ملي اوهېوادنۍ ګټې لوړې او د قدر وړ وي، ځکه په اوسنيو شرايطو کـې زموږ جګړه ځپلـی مظلوم ولس له بـل هرڅـه زيات ملي يووالي اوملي وفاق ته اړتيا لري، نـو بايد هيڅکلـه دې ته اجازه ورنه کړل شي، چـې بهرنيان، د قوميت، ژبې او په داسـې نورو ډول ډول نومونـو زموږ ترمنځ نفـاق اوبېلتون واچـوي اوموږ هم په ناپوهۍ د هغوې د ناوړو عملونو وسيله وګرځو. په داسې حالاتـو کې رښـتينې خبريالان اوهـم همـدا رسـنۍ چـې په حقيقت کې د افغـان ولس ژبه ګڼل کېږي، بايد د پرديو هر راز نفاق اچونه چـې په هرنوم وي وغندي اوبالمقابـل د ملي يووالي د ټينګښت په برخه کې د خپلو نشراتي لومړيتوبونـو په سرکې ځای ورکړي.

البتـه دې ټکی ته مـو بايد پام وي چې رسـنۍ هغه وسيلی هم دي چـې د هېوادوالـو ترمنځ د ارتباطاتـو او اړيکو د ټينګولو سـبب ګرځـي او دوی د يو بل له دود، دسـتور ، فرهنګ، دين مذهب ... او په نړيواله... ۳مخ

# افغان اعلانات

### اعلان تدارکات

عنوان پروژه: پروژه اعمار سب استیشن دشت ارچی به ظرفیت ۲۰KV/۲۲۰, ۱X۱٦MVA و تمدید یک لین بی در سب استیشن عسقلان به شمول سروی، دیزاین، تهیه تجهیزات، انستالیشن، تست و کمیشنینگ ولسوالی ارچی ولایت کندز

شماره داوطلبی:
NPD/DABS/1403/NCB/W-1154

ریاست تدارکات ملی ریاست عمومی اداره امور ۱.۱.۱ به نمایندگی از د افغانستان برشنا شرکت – ریاست عمومی شرکت های امارتی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه پروژه اعمار سب استیشن دشت ارچی به ظرفیت ۲۰KV/۲۲۰, ۱X۱٦MVA و تمدید یک لین بی در سب استیشن عسقلان به شمول سروی، دیزاین، تهیه تجهیزات، انستالیشن، تست و کمیشنینگ ولسوالی ارچی ولایت کندز با شماره داوطلبی: NPD/DABS/۱۴۰۳/NCB/W-۱۱۵٤ اشتراک نموده و سافت کاپی شرطنامه و ضمایم ۱ و ۲ آنرا از ویب سایت های ریاست عمومی اداره امور {https://aop.gov.af/dr/access_to_information/administrative} یا ریاست تدارکات ملی {https://tenders.ageops.af/prs/bid-opportunities-notices} یا برشنا شرکت {https://main.dabs.af//Tenders/show} بدست آورده، آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ ق.ظ مورخ ۱۸ حمل ۱۴۰٤ به آمریت سکرتریت تسهیلات آفرگشائی ریاست تدارکات ملی، جوار قصر مرمرین ریاست عمومی اداره امور ۱.۱.۱ واقع پشتونستان وات، کابل – افغانستان ارایه نمایند. آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.

داوطلبان که شرطنامه را بدست می آورند، معلومات شرکت خویش را به منظور دریافت بموقع تعدیلات شرطنامه در صورت لزوم به ایمیل آدرس npd.mufti.bidding۲@gmail.com و کاپی به wasif.arif@gmail.com ارسال نموده و در وقت ضرورت به شماره ۰۲۰۲۱۴۳۲۷٤ تماس گرفته حل مطلب نمایند.

تضمین آفر بصورت ضمانت بانکی مبلغ ۵,۵۰۰,۰۰۰ افغانی بوده و جلسه آفرگشایی به ساعت ۱۰:۰۰ ق.ظ بتاریخ ۱۸ حمل ۱۴۰٤ در صالون پامیر ریاست تدارکات ملی، جوار قصر مرمرین ریاست عمومی اداره امور ۱.۱.۱ واقع پشتونستان وات، کابل –افغانستان تدویر می یابد.

### اطلاعیه فسخ جواز رهنمای معاملات

اسامی محترم یاسین فرزند خیالی ولدیت محمد جان دارنده جواز نمبر (۲۵۹۷) مورخ ۱۴۰۰/۱۲/۱۱ متصدی رهنمای معاملات (پسران اسحق زی) واقع (چهار راهی ترافیک) ناحیه (۴) شاروالی کابل خواهان فسخ جواز خویش گردیده که بعد از نشر اعلان رهنمای مذکور فاقد اعتبار قانونی بوده هر گاه ادارات دولتی و اشخاص انفرادی بالای موصوف ادعای حقوقی به ارتباط فعالیت جواز مذکور داشته باشند بعد از نشر اعلان الی مدت یک هفته به ریاست عمومی انسجام ، وزارت عدلیه اطلاع دهند.۹۸۱۶

### اطلاعیه مزایده

فابریکه تصفیه نمک آیودین پامیر بلور میخواهد یک باب هنگر شرکت امارتی سیلوی مرکز را ماهوار به مبلغ (۱۱۰،۴۰۰) افغانی برای مدت سه سال به کرایه بگیرد.

شرکت های خصوصی ، ادارات امارتی و موسسات که خواهش گرفتن آنرا بالاتر از مبلغ متذکره را داشته باشند درخواست های خویش را از نشر اعلان الی مدت ۲۱روز به مدیریت تولیدات و قرار داد های آمریت پلان و انکشاف تجارتی سیلو بسپارند شرطنامه را اخذ و بروز داوطلبی حاضر در مجلس گردند.۹۸۰۸

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۶۱۴/۶۵ مورخ ۱۹/ ۱۳۶۷/۳ مرتبه محکمه ناحیه ۱۱ شهر کابل به اسم غلام سرور فرزند میر حیدر ولدیت میر اصغر مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۸۰۹

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۱۲۱/۲۹۷۹ مورخ ۱۳۹۵/۵/۳ مرتبه محکمه وثایق حوزه سوم به اسم محمد علی فرزند حاجی محمد ولدیت سرور جایداد واقع ناحیه سوم کارته چهار مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۸۱۳

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود که د آریانا افغان هوائی شرکت در نظر دارد پروژه تدارک حد اقل ۹۷٤۰۰ و حد اکثر ۱۲۰۰۰۰ لیتر تیل پطرول و حد اقل ۸٦۰۰۰ و حد اکثر ۱۰۰۰۰۰ لیتر تیل دیزل مورد ضرورت وسایط زمینی برای سال ۱۴۰٤ مورد ضرورت مدیریت ترانسپورت د آریانا افغان هوائی شرکت طوریکه به مبلغ مجموعی ۱۱,۷۳۷,٦۰۰افغانی به شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان واقع کوتل خیرخانه کابل -افغانستان ، اعطاء نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به آمریت عمومی تدارکات ، د آریانا افغان هوائی شرکت واقع چهار راهی شهید، شهرنو، کابل وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

---

### د اسلام ضد افکارو ...

هلي ځلې اړيني دي. د عقلي استدلال پر مټ بايد دا افکار رد شي، ترڅو حقيقت روښانه شي او د خلکو ذهنيتونه سمو الي ته راوګرځي.

مسلمانان بايد د خپل دين پر اصولو کره پوهه ولري. د اسلامي تاريخ، تمدن او فقهي اساساتو مطالعه ضروري ده، ترڅو د ديني ارزښتونو دفاع د علم او استدلال پر بنسټ وشي. ډېرې هغه نيوکې چې پر اسلام کېږي، د ناسمو معلوماتو يا تحريف شويو روايتونو پايله وي. که مسلمانان د خپل دين عقلي او علمي بنسټونه وپېژني، کولای شي د هر ډول فکري حملې په وړاندې منطقي ځواب ولري.

تعليمي نصاب بايد اصلاح شي. د اسلامي تمدن، د مسلمانانو لاس ته راوړنو او د اسلامي قانون اهميت بايد زده کوونکو ته روښانه شي. په تعليمي بنسټونو کې بايد داسې محتوا شامله شي چې د اسلام د علمي، فلسفي او تمدني ارزښتونو بيان وکړي. زده کوونکي بايد د اسلامي تاريخ د زرين دور، د مسلمانو پوهانو د ونډې او د اسلامي قانون د عادلانه نظام په اړه معلومات ترلاسه کړي.

رسنيز کار بايد پراخ شي. د اسلام حقيقي پيغام بايد د معاصرې ژبې او عصري وسايلو له لارې وړاندې شي. کتابونه، مقالې، ويډيويي مستندونه، ټولنيز رسنيز کمپاينونه او د بحثونو فورمونه بايد وده وکړي، ترڅو عامه پوهاوی زيات شي. اسلام د عدالت، رحمت او حکمت دين دی او دا پيغام بايد خلکو ته له جذابو رسنيزو لارو وړاندې شي.

مسلمانان بايد تمدني کار ته مخه وکړي. يوازې مقالې، ليکنې او ويناوې بسنه نه کوي. د عدل، علم، اقتصادي ودې او ټولنيزو اصلاحاتو له لارې بايد د اسلام د ارزښتونو تطبيق وښودل شي. د اسلامي اخلاقو عملي ښودنه د اسلام پر ضد تبليغاتو ته له ټولو قوي ځواب دی. کله چې يوه ټولنه د عدل، امانت، علم او پرمختګ الګو وګرځي، د اسلام ضد مفکورې خپلې اغېزې بايلي.

د اسلام ضد افکار د ناسمو معلوماتو، تعصب، سياسي موخو او کلتوري نفوذ له امله خپرېږي. تعليمي نظام، رسنۍ او سياسي پاليسۍ د اسلام ناسم انځور وړاندې کوي، چې د ځينو کسانو په ذهنونو کې شکونه او بدبيني پيدا کوي. د دې ستونزې حل يوازې په احساساتي غبرګون نه، بلکې د علمي پوهې، تعليمي اصلاحاتو او تمدني هڅو له لارې ممکن دی. مسلمانان بايد د خپل دين پر اصولو کره پوهه ولري، د اسلامي تمدن لاس ته راوړنې وپېژني او د عصري وسايلو له لارې د اسلام رښتينی پيغام وړاندې کړي. که د عدالت، علم او ټولنيز پرمختګ له لارې د اسلام ارزښتونه عملي شي، نو د اسلام ضد تبليغات به اغېزمن نه پاتې کېږي.

### جهان در بحبوحه ی ...

آغاز گردید. گاهی با تحریم و گاهی با منجمد کردن سرمایه های مردم افغانستان فشارهایی را بالای مردم رنج کشیده ی ما وارد کردند. در کل از هرنگاه مداخله در اصول، قوانین ،عقاید و فرهنگ مردم ما می‌نمایند.

در امور کشوری و سنت های آن به نحوی مداخله می‌نمایند.

فشرده اینکه شالوده وشیرازه این تک محوری ها جهان را بسوی ناامنی، بحران های اقتصادی و جنگ سوم جهانی خواهد کشاند. درگیری های موجود و جانبداری های این طرف و آن طرف در حقیقت مصداق مدعای ماست.

راه بیرون رفت از این معضل چه بوده می‌تواند، بایک دید فراخ وگسترده تمام کشورهای جهان و مسئولین آن فکر نموده تصمیم اتخاذ نمایند تا به حریم، هویت، جغرافیا و حاکمیت کشور ها احترام متقابل صورت گیرد و جامعه جهان در راس آن سازمان ملل مستقلانه مطابق به صلاحیت های خویش عمل نموده جلو خود کامه گان را گرفته تا باشد یک فضای عاری از دغدغه را در جهان شاهد باشیم.

### خبريال د هرې ټولنې ...

کچه له هرډول اختراعاتو او انکشافاتو ځخه خبروي. همداشان رسنۍ نه يوازې خلك له پيښو او واقعاتو با خبر ساتي، بلکې کولای شي چې خلك ملي وحدت او يوموټيتوب ته راوبولي او په ګران هېواد کې دميشتو ورونو قومونو ترمنځ هر راز ستونزې له منځه يوسي او يو پربل د بشپړ اعتماد او باور فضا لاپسې پياوړې کړي.

نو اساسي خبره بيا داده چې په ټوليزه توګه رسنۍ او په ځانګړي توګه خبريالان چې د رسنيو په اډانه کې خپلې چارې پرمخ بيايي بايد ملي ګټې اوملي مصالح له شخصي ګټو ځخه تل غوره او لوړ وګڼي او په پوره رښتينولۍ خپل ملي او اسلامي رسالت په بشپړې هېواد پالنې سرته ورسوي، ځکه د خلکو ترمنځ د ملي يووالي د روحيې او د باور د فضا په برابرولو کې د رسنيو رول ارزښتناك دی، نو رسنۍ بايد په دې لاره کې ډېره هڅه اوهاند وکړي، د خلکو اوهېواد پر وړاندې دې خپل مسئوليت او رسالت لکه څنګه چې يې ترسره کړی دی لايې هم په ښه توګه ادا کړي.

### د بې پولې ډاکټرانو ورو ستی ...

د اندېښنې سبب نه شي. د عامې روغتيا وزارت همداراز ويلي: تېرو څو کلونو کې يې د شري ناروغۍ پر وړاندې کوټلې ګامونه پورته کړي او په ټول هېواد کې يې د واکسيناسيون کمپاينونه ترسره کړي، چې د روان ۲۰۲۵ ز کال په جريان کې به هم ۱۶ ميليونه ماشومانو ته د شري واکسين تطبيق شي.

### افغانستان پر هوايي دهلېز ...

رسيږي ،چې له دې جملې ځخه ۱۲۵ميليونه ډالره يې صادرات او ۱۶۷ ميليونه يې واردات جوړوي.خبرپاڼه کې راغلي ،چې صادراتي توکو کې وچه ميوه، زعفران، وچ او تازه انځر، عناب، جلغوزي، لاسي صنايع او ځينې نور توکي شامليږي او وارداتي توکو کې هم درمل او برښنايي وسايل شامليږي.))د صنعت او سوداګرۍ وزارت څه موده وړاندې ويلي و، چې افغانستان د روان لمريز کال له پيل راهيسې د دلوې مياشتې تر پايه يوشمېر هېوادونو ته يو زر او سل ټنه جلغوزي صادر کړي دي. دغه وزارت ويلي، چې افغانستان تېرو ۱۱مياشتو کې د جلغوزيو له صادراتو څه باندې ۱۴ميليونه ډالره عايد ترلاسه کړي دي.

### هيواد کې ۱۰۴۰۰ ښوونځيو ته ...

د هېوادوالو لپاره پانګونه ده. نوموړي ويلي: بهرنيو پانګوالو ته د هېواد په هره برخه کې د پانګونې زمينه برابره شوې او همداراز يې د هر اړخيزې همکارۍ ډاډ ورکړی دی. د پوهنې د وزير په وينا: تر اوسه يې په ټول هېواد کې د خپلو همکارو بنسټونو په مرسته يو زر او ۴۰۰ ښوونځيو ته ودانۍ جوړې کړې او د ځينو يې بيارغونه کړې ده. نوموړي همداراز ويلي، چې راستنېدونکو کډوالو ته يې د پوهنې په برخه کې د ځانګړو پلانونو په جوړولو سره لازمې اسانتياوې برابرې کړې دي. د لغمان ولايت د پوهنې رئيس مولوي شاه جهان ساجد ويلي: يادې څلور پروژې د يوه شخصي پانګوال له خوا د ۱۱ نيم ميليونو افغانيو په لګښت بېلابېلو سيمو کې جوړې شوې دي .

نوموړي زياته کړې: د نيلاوټ لېسه د درېوو ميليونو او ۵۰۰ زره، د ياد ولايت د پوهنې رياست مرکزي جومات د يو ميليون او ۵۰۰ زره، د کتبزايو ليسې ودانۍ د دوه ميليونه او ۵۰۰ زره او د چندلام دوه پوړيزه ودانۍ د څلور ميليونو افغانيو په لګښت جوړې او ګټې اخيستنې ته وسپارل شوې.

### تېره مياشت کې څه باندې ...

له ټولو ډېره استرداد شوې ځمکه په باميانو کې موقعيت لري، چې ۸زره ۳۵۱ جريبه ځمکه په کې شامله ده. سرچينې زياته کړې، چې د ځمکو له غصب ځخه د مخنيوي تخنيکي پلاويو همدارنګه د يادې مياشتې په اوږدو کې څه باندې ۲۵۳ زره ۵۳۱ جريبه امارتي ځمکه د افغانستان په ۲۴ولايتونو کې تثبيت کړې او څه باندې ۴۹۷زره ۹۵۴ جريبه نوره ځمکه يې هم په ۳۱ولايتونو کې تر بررسۍ لاندې نيولې ده. په خبرپاڼه کې ځرګنده شوې، چې د امارتي ځمکو د بررسۍ، تثبيت او استرداد بهير په ټولو ولايتونو کې دوام لري او د غصب شويو زرګونو جريبو امارتي ځمکو دوسيې، د ځمکو له غصب ځخه د مخنيوي کمېسيون او په ولايتونو کې د ياد کمېسيون د تخنيکي هيئتونو تر بررسۍ لاندې دي.

### د قوشتېپې کانال د لومړي ...

د رياست‌الوزراء د اقتصادي مرستيالۍ د اقتصادي رياست رئيس ابراهيم حکمت، د چارو اداري مرستيال مولوي محمود شاه او د اوبو او انرژۍ، کرنې او ټولګټو چارو وزارتونو او د ملي پراختيا شرکت ځينو مسئولينو او متخصصينو ګډون کړی و. غونډه کې د کرنې وزير د قوشتېپې کانال د لومړي او دويم فاز پرمختګ د پام وړ بللي او ويلي يې دي، چې د دغې پروژې چارې له کمو امکاناتو سره ـ سره په معياري ډول پر مخ وړل کېږي. همدارنګه مولوي عطاءالله عمري د پروژې راتلونکي پرمختګ ته پاملرنه مهمه بللې او له مسئولينو يې غوښتي، چې د کرنيزو ځمکو د اوبو لګولو ظرفيت نور هم لوړ کړي. په ورته مهال د کرنې وزارت مالي سلاکار عزيزالرحمن رحماني د هغه پلاوي د سفر راپور وړاندې کړ، چې د کرنې د وزير په مشرۍ جوزجان، بلخ او فارياب ولايتونو ته د قوشتېپې کانال د تاسيساتو د ارزونې لپاره تللي و. راپور د مشرتابه له ارزونې وروسته نهايي شو او په غونډه کې د پروژې تخنيکي مسايل، د پلي کېدو ستونزې او د کار د چټکتيا حل لارې هم وڅېړل شوې.

### د ځانګړو ځواکونو فرقې ...

ستاسو برياوو، مسلکي وړتيا او رزمي نمايشونو د دښمنانو په زړونو کې وېره اچولې او دا هيله يې د تل لپاره له لاسه ورکړې، چې د اسلامي نظام په شتون کې به خپلو کرغېړنو موخو ته و نه رسېږي. نوموړي ويلي: د کفر او اشغال له ماتې وروسته اوس پر ټولو فرض ده، چې د اسلامي نظام د بقا اود هېواد ساتنې لپاره د دښمنانو پر وړاندې مبارزه وکړو. بله خوا تازه فارغو شويو مجاهدو کماندويانو د هېواد په ګوټ ګوټ کې خدمت کولو ته چمتووالی ښودلی.

### د کډوالو نړيوال سازمان ...

ها خوا د کډوالو چارو وزير هم د کډوالو او داخلي بېځايه شويو لپاره د ملګرو ملتونو بشري مرستې مهمې او اغېزمنې بللې دي. مولوي عبدالکبير زياته کړې: اسلامي امارت په دايمي ډول د کډوالۍ ستونزې د حل هڅې کوي او کډوالو ته د ښارګوټو په جوړولو يې د اړوندو مرستندويو بنسټونو پر همکاريو ټينګار کړی. د کډوالو نړيوال سازمان داسې مهال په جبر د کډوالو اېستلو ته اندېښنه ښودلې، چې د پاکستان حکومت له دې هېواده د افغان کډوالو د ايستلو لپاره د روانې مارچ مياشتې وروستۍ نېټه ورکړې ده.

### لوګر کې د يوې پروژې ...

بشپړې شي، چې ورسره به د سيمې يو شمېر کسانو ته هم د کار زمينه برابره شي. د يادونې وړ ده، چې اوس مهال په ياده موسسه کې پر يادې پروژې سربېره د يو شمېر نورو رغنيزو پروژو چارې هم رواني دي.

### ننګرهار کې د موتيا ګلانو ...

چې د کرنې وزارت په مالي ملاتړ د ۱.۳۷ ميليونو افغانيو په لګښت د دغه ولايت په بهسودو، حصارک، سره رود، چپرهار، لعلپوره او مومندرې ولسواليو کې پر لس جريبه ځمکه د موتيا ګلانو نمايشي قطعې جوړې شوې دي. د نوموړي په وينا هره نمايشي قطعه ۱۰۰۰ بوټي، کرنيز وسايل، تخمونه او سپينه کيمياوي سره لري، چې د بزګرانو د اقتصادي پياوړتيا لپاره ګټور ثابتېدای شي.

د کرنې رياست مسئولينو د دې طرحې د عملي کېدو په اړه خوښې ښودلې او ويلي يې دي چې د موتيا ګلانو کښت به پر چاپېريالي ښکلا او د اقتصاد پر ودې مثبته اغېزه ولري. باختر

### ۲ کارخانه تولید بسکویت ...

شده در آن ولایت سرمایه‌گذاری کنند. از سوی دیگر سردار ولی و زین‌الله مالکان این کارخانه ها می گویند که هرکدام بالای هرکار خانه مبلغ ۲میلیون افغانی سرمایه‌گذاری کرده‌اند که هردو کار خانه در ۲۴ساعت حدود ۱۳۰۰کیلوگرام بسکویت تولید می کنند.یکی از کارگران این کارخانه ها می گوید: خوشحال هستم که در کشور خود کار می‌کنم. او از سرمایه گذاران خواست که با توجه به امنیت و امکانات فراهم شده در داخل کشور، سرمایه‌گذاری کنند تا زمینه کار برای افراد بیشتری مهیا گردد.

قابل ذکر است که در سه سال گذشته، شمار زیادی از کارخانه‌های تولیدی تازه در ولایت میدان وردک تأسیس شده و برای هزاران جوان فرصت‌های شغلی ایجاد گردیده است.

### افغانستان کې د ټاپي ...

څه باندې ۱۸۰۰ کيلومتره اوږدوالی لري، چې له ترکمنستان ځخه د افغانستان او پاکستان له لارې هند ته ګاز لېږدول کېږي. د دغې پروژې ټول لګښت ۲۲ميلیارده او ۵۰۰ ميليونه ډالره ښودل شوي او افغانستان به د دې پروژې له لارې هر کال شاوخوا ۵۰۰ ميليونه ډالره د ټرانزيټ حق ترلاسه کړي. هېره دې نه وي، چې د ټاپي ګازو پايپ‌لاين له لارې هر کال ۳۳ ميلیارده متره مکعبه ګاز لېږدول کېږي، چې ۵ ميلیارده متره مکعبه به يې په افغانستان او ۱۴/۱۴ ميلیارده متره مکعبه به يې په پاکستان او هند کې مصرف شي.

### غزه کې د اشغالګرو ...

چې قطر کې د حماس جهادي غورځنګ او اشغالګرو اسرائيلو ترمنځ د اوربند دويم پړاو خبرې روانې دي.که څه هم حماس تر اوسه دې بريد ته په غبرګون کې څه نه دي ويلي، خو وړمه ورځ يې اعلان وکړ چې يو ژوندی او څلور جسدونه به مقابل لوري ته وسپاري. دا په غزه کې د جګړې د ښکېلو غاړو ترمنځ د اوربند له لومړي پړاوه وروسته لومړی هوايي بريد دی، چې د صهيونيستانو له لوري ترسره کېږي. غزه کې د اوربند لومړي پړاو کې حماس جهادي غورځنګ د شاوخوا ۲زره فلسطينيانو د خلاصون په بدل کې ۳۳ اسرائيلي اسيران خوشې کړل.

### کابل ښاروالي ۳۰زره ...

لارو تطبيقوو او هر کال به ورته برنامې تر سره کېږي.

د کتابونو ترلاسه کوونکي ګډونوال شېر محمد وايي: د ښار د پاک ساتلو، د ضرر لرونکو شيانو د مخنيوي او د ښاري فرهنګ د ودې په پار په کار ده چې دا له کوچنيتوبه د ماشومانو ذهن کې ځای پر ځای شي تر څو په لويېدو سره د ښاري فرهنګ پر ټولو لارو بلد واوسي او د پاک ساتلو لپاره يې هڅه وکړي، نو نه يوازې کابل ښاروالۍ په دې برخه کې مسئوليت لري، بلکې ټول کابل ښاريان بايد له دوی سره همکار واوسي تر څو مو ښار پاک او ژوند مو له ګواښوونکو مرضونو خوندي وي. نن چې کابل ښاروالۍ د عامه پوهاوي دکتابونو د وېش برنامه پر لاره اچولې ده، د کوچنيانو، لويانو او ښاري فرهنګ په ودې کې رغنده رول لري، تر څو يې په ژوند کې عملي کړو او د دې خاورې د ساتنې دنده په سمه توګه تر سره کړو. د يادونې وړ ده چې « زه ورک شوی يم، ونه، سور کب، د نيالګيو کېنولو او روزنې لارښود، زموږ ښار زموږ کور، د پلاستيکي کڅوړو زيانونه، هوا، زړه ونه، هوښيار طوطي، ښه ښار او ښه اوسېدونکي او د کوچنيانو لپاره د ترافيکي قوانينو کتابونه» وېشل کېږي. زيارمل هوتک

### سمنګانو کې د پيښو ...

په جوړېدو سره به اداري اسانتياوې ښې شي او د يادې اداري کاري بهير به په ښه کيفيت سره دوام وکړي. باختر

### د ټولګټو وزارت په نوي ...

په ټاکلي وخت او له پلان سره سم بشپړې کړي. دا په داسې حال کې ده، چې د ټولګټو وزارت په هېواد کې د يو شمېر لويو پروژو کار پيل کړی دی او دا مهال يې د ځينو پروژو کار جريان لري.

### د ارزګان د معلولينو ...

اړه رسنيو ته ويلي: (( دا مې څلورم ځل دي چې دلته راځم کرايي راباندي تاوان دي. له يوه طرف ځخه ۶۰۰افغانۍ کرايه راباندي راځي. موږ ته ډېره ستونزه ده موږ له دولت ځخه غوښتنه کوو چې زموږ معاش دي موږ ته راکړي، ترڅو زموږ دغه ستونزې حل شي.))په ورته وخت کې په ارزګان ولايت کې د شهيدانو او معلولينو اداري ځايي مسئولين ژمنه کوي چې په ياد ولايت کې به هڅه وکړي چې د معلولينو شته ستونزې ورته حل کړي.

دارزګان ولايت د شهيدانو آمر عبدالقاهر انس وايي: (( موږ دوی ته ډاډ ورکوو چې د وزارت له خوا ځخه کوم امتيازات موږ ته راکول شوی، هغه امتيازات موږ دوی ته ورکوو، ځيني وخت د تخنيکي ستونزو له امله د دوی امتيازات ځنډيږي،خو کوښښ کوو،چې پر وخت يې ورته ورسوو.)) دا په داسې حال کې ده چې له دې مخکې هم په ياد ولايت کې د شهيدانو کورنيو او معلولو شويو کسانو له دولت ځخه د پاملرنې غوښتنه کړې وه.

### ميدان وردګو کې ...

د جوړولو چارې روانې وې، چې دوی يې مخنيوی وکړ. سرغړوونکي کس ته لازمې لارښوونې شوې ،چې څنګه کېدای شي په مصؤن او د پلان مطابق ځای کې کور جوړ کړي او ارام ژوند غوره کړي. د کور او ښار جوړولو وزارت هېڅا ته اجازه نه ورکوي ،چې د پلان خلاف چارې ترسره کړي.

### د هرات–بادغيس ...

د ښه والي لپاره هر اړخيزې هڅې او همکارۍ دوام ومومي. مسئولينو وويل چې د دې لوړ ټناژ تلې په نصبولو د درنو بارونو کنټرول د دې سبب کېږي، چې سړکونه او پلونه له زړښت، درزونو او تخريب ځخه وساتل شي او د عوايدو په راټولولو کې به شفافيت راشي. د يادونې وړ ده چې له دې وړاندې هم په ځينو نورو ولايتونو کې د لوړ ټناژ د کنټرول لپاره تلې نصب شوي دي.

### نورستان کې ۱۱۰۰۰هکتاره ...

واکسينونه هم ورکړ شوي دي.

هېره دې نه وي چې په ياد ولايت کې پر څر ځايونو سربېره د شته ځنګلونو د ساتنې ترڅنګ ۲۵۰۰ هکتاره نور ځنګلونه هم د ياد ولايت په بېلا بېلو برخو کې رغول شوي دي. باختر

Hewad Daily

دوشنبه د رمضان المبارک ۱۷ مه ۱٤٤٦ ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب ۲۷ مه د 2025 م کال د مارچ 17 مه

دورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر «بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل افغانستان
داړیکو شمېره: س۰۲۵۲۶۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې ویب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

# افغانستان کې د ټاپي پروژې کار ۱۰کیلومتره بشپړ شوی



د کانونو او پټرولیم وزارت مسئولین وايي چې د افغانستان په خاوره کې د ټاپي پروژې چارې ۱۰ کیلومتره پر مخ تللې دي. د کانونو او پټرولیم وزارت ویاند همایون افغان، په خپله ټولنیزه «اکس» پاڼه لیکلي دي: ”د افغانستان په خاوره کې د ټاپي پروژې چارې لس کیلومتره مخ ته تللې او د هوا په ګرمېدو سره به د یادې پروژې چارې نورې هم ګړندۍ شي.))په افغانستان کې د ټاپي پروژې عملي چارې شاوخوا اووه میاشتې وړاندې د افغانستان او ترکمنستان د لوړپوړو چارواکو له لوري پیل شوې. د ټاپي پایپ‌لاین ... ۳مخ

# غزه کې د اشغالګرو له لوري هوایي بریدونو کې ۹ تنه شهیدان شوي

رویټرز خبري اژانس خبر ورکړي، چې د غزې بیت لاهیا ښار کې د اشغالګرو اسرائیلو په هوایي برید کې ۹تنه شهیدان شوي او یو شمېر نور ټپیان شوي دي. دغه برید د بشري مرستو د وېش پر یوه موټر شوی، چې خبریالان یې هم د خبري پوښښ



لپاره ورغلي وو. دغه هوایي برید داسې مهال شوي ... ۳مخ

# کابل ښاروالي ۳۰زره ټوکه د عامه پوهاوي کتابونه وړیا وېشي

د کابل ښاروالۍ له لوري په کابل کې د عامه پوهاوي ۱۲ عنوانه کتابونه، دېرش زره ټوکه وېشل کېږي. په اړه یې د کابل ښاروالۍ فرهنګي سلاکار نعمت الله بارکزي وویل: کابل ښاروالي د بیارغونې تر څنګ د عامه پوهاوي رسالت هم په غاړه لري او په همدې موخه یې د هېوادوالو لپاره د عامه پوهاوي دېرش زره کتابونه برابر کړي چې ځلبرویشت زره یې وېش ته چمتو دي او وړیا یې وېشو، تر څو مو هېوادوال د ونو، شنو سیمو، پاکې هوا، د ښار پاک ساتلو، چاپېریالي همکاریو او د ښاري فرهنګ د ودې په موخه



ترې ګټه واخلي. د بارکزي په وینا: له دې وړاندې مو هم له ښوونځیو، کتاب خپرولو، مجلو نشر ولو، نقاشۍ، بروشرونو او د نورو خپریدونکو وسیلو له لارې د عامه پوهاوي په پار هېوادوالو ته مواد رسولي دي، تر څو د ښاري فرهنګ په وده کې د کابل ښاروالۍ همکار واوسي.

همداشان د پلاستیکي کڅوړو کارونه ده، چې له بده مرغه ډېر هېوادوال مو کاروي، چې دا چاره په خپله د ښار د ناپاکې هوا سبب کېږي، نو هېوادوال دې له تیکه یې کڅوړو څخه ګټه واخلي تر څو د پاکې هوا په لرلو سره او له ګواښوونکو مرضونو څخه مخنیوی هم کېږي.

د نوموړي په خبره: د وکیلانو، د مسجدونو د امامانو او د عامه پوهاوي ریاست پر مټ د خلکو ستونزې اورو او د عامه پوهاوي برنامې له دې... ۳مخ

# سمنګانو کې د پېښو پر وړاندې د چمتووالي ریاست ته ودانۍ جوړېږي

د سمنګانو ولایت د پېښو پر وړاندې د چمتووالي ریاست



لپاره د ۱۳میلیونو افغانیو په لګښت د ودانۍ جوړولو د بنسټ ډېره کېښودل شوه. سرچینې ویلي، چې دغه ودانۍ د ۱۳میلیونو افغانیو په لګښت پر ۳۴۶ متره مربع مساحت او په درېوو پوړونو کې په اساسي توګه جوړېږي.

سرچینې زیاته کړې چې په یاده ودانۍ کې د ۱۲ اداري خونو، د اوبو او برښنا د عصري سیستم جوړول شامل دي، چې چارې به یې په ۶ میاشتو کې بشپړې او ګټې اخیستنې ته به وسپارل شي.

په ورته وخت کې د دغه ریاست مالي او اداري مدیر عبدالمنان قادریار ویلي چې د پېښو پر وړاندې د چمتووالي ریاست تراوسه په مستقله توګه ودانۍ نه لري. د یادونې وړ ده، چې د دغې ودانۍ ... ۳مخ

# مسئولین: د ارزګان د معلولینو ستونزو ته به رسیدنه وشي

په ارزګان ولایت کې یو شمېر معلول هېوادوال او د شهیدانو وارثین له دولت څخه غوښتنه کوي چې د مرستو برخه کې دوی ته پاملرنه وکړي او د هغوی د حقونو ترڅنګ دې امتیازات ورته زیات کړي .په ارزګان ولایت کې د شهیدانو او معلولینو ریاست ته د حبیبې په نوم یوه عمر خوړلې ښځه له خپلو ۴ معلولو شویو اولادونو سره راغلې ترڅو مرسته ترلاسه کړي.

دغه ښځه وایي: له سختو اقتصادي ستونزو سره مخ ده او په خبره یې دومره وس نه لري چې د خپلو معلولو شویو اولادونو ساتنه او پالنه په ښه ډول وکړي. حبیبه: ((څلور معلول شوي اولادونه لرمه، هیڅ شي نه لرمه، ۱۰ پسونه لرمه، بل هیڅ شي نه لرمه، د دغو معلولو شویو کسانو ساتنه زه کومه، بل



څوک سرپرست نه لرو، کور ته مو راشئ کلي وګورئ چې زموږ وضعیت څومره خراب دي.))

په ورته وخت کې په ارزګان ولایت کې یو شمېر نور معلولین او د شهیدانو وارثین هم له اقتصادي ستونزو څخه شکایت کوي او له دولت څخه غوښتنه کوي،چې د هغوی د حقونو د ورکولو ترڅنګ دې امتیازات ورته زیات کړي. یو تن معلول ساعت محمد په دې... ۳مخ

# د ټولګټو وزارت په نوي کال کې د پروژو د رغولو په اړه غونډه وکړه

د ټولګټو وزیر ملا محمد عیسي ثاني په ټول هېواد کې د یاد وزارت د پروژو د رغنیزو چارو د پیلېدو په هکله د یو شمېر ودانیزو او سړک جوړونې شرکتونو له مسئولینو، پانګوالو او د یاد وزارت له تخنیکي رئیسانو سره مشورتي ناسته وکړه. په دغې ناسته کې په هېواد کې د ټولګټو وزارت داړوندو پروژو د رغولو په تړاو هر اړخیزې خبرې اترې وشوې او د ټولګټو وزیر د قراردادي او غیر قراردادي شرکتونو مسئولینو ته لارښوونه وکړه، چې هر ډول چې لازمه وي، په هماغه ډول باید په نوي کال کې د ټولګټو وزارت ټولې پروژې په ښه ډول پلې او له پلان سره سم یې کارونه بشپړ شي. د قراردادي شرکتونو مسئولینو د ټولګټو وزارت رهبرۍ ته ډاډ ورکړ، چې هڅه کوي د اړوندو پروژو چارې... ۳مخ

# میدان وردګو کې د ښاري تخلفاتو مخنیوی وشو

د کور او ښار جوړولو وزارت د ښاري تخلفاتو د مخنیوي رئیس مولوي عبدالمنان حقاني وایي: تخنیکي ټیم یې په میدان وردګو کې د دې ولایت د کور او ښار جوړولو د رئیس مولوي عبدالقیوم سیف العمر په لارښوونه او همکارۍ په یاد ولایت کې د ښاري تخلفاتو مخنیوی وکړ.

ښاغلي مولوي حقاني وایي: ټیم یې د مرکز میدان ښار اړوند په سردار محمد داود خان ښارګوټي کې خپلې چارې پیل کړې دي. نوموړی وایي: د نوموړي ښارګوټي د تفصیلي پلان خلاف د سیلبر د حریم په شنه ساحه کې د یوه شخص له لوري د یوې استوګنیزې نمرې... ۳مخ

# د هرات-بادغیس پر لویه لاره د لوړ تناژ تله نصب شوه

د بادغیس ولایت ځایي مسئولین وایي چې د دهن تګاب اسماعیل په سیمه



کې د ۴.۵ میلیونو افغانیو په لګښت د لوړ تناژ تلې د نصبولو چارې د ځایي مسئولینو په شتون کې پیل شوې دي.

د پروژې د پرانیستې په مراسمو کې د بادغیس والي حافظ د دې پروژې پر اهمیت ټینګار وکړ او ویې ویل، چې په یاد ولایت کې به د ټرانسپورټ او سوداګرۍ د بهیر... ۳مخ

# نورستان کې ۱۱۰۰۰هکتاره څرځایونه بیا رغول شوي

د نورستان ځایي مسئولین وایي، چې په یاد ولایت کې ۱۱زره



هکتاره څرځایونه بیا رغول شوي دي. د نورستان والي قاري زین العابدین عابد وایي، چې د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست او مؤسسو له لوري په دغه ولایت کې ۱۱زره هکتاره څرځایونه چې په بېلابېلو ولسوالیو کې د واورې او سېلابونو له امله له منځه تللي وو بیارغول شوي دي.

نوموړي زیاته کړه، چې د څرځایونو د بډاینې په موخه ۹متریک ټنه للمي رشقه وېشل شوې، د اوبو حوزونه جوړ شوي او په مرکز او ولسوالیو کې پر ۲۵ زره مالدارانو حیواني خوراکي توکي وېشل شوي چې له دې سره جوخت دوي ته ۵۰ زره ډوزه د پي پي آر ... ۳مخ

# د فراه ۳ولسوالیو کې ۱۶۷کیلومتره سړکونه بیارغول شوي



د فراه ولایت د ټولګټو چارو ریاست مسئولین وایي چې د روان ۱۴۰۳ کال په لړ کې د دغه ولایت په درېوو ولسوالیو کې یې ۱۶۷کیلومتره سړکونه بیارغولی دی.

د یاد ولایت د ټولګټو چارو رئیس مولوي محمد ولي ادریس باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د روان کال په لړ کې د یاد ولایت په پشترود، خاکسفید او بالابلوک ولسوالیو کې د ۱۶۷ کیلومترو په اوږدوالي او د ۷ مترو په سور سره سړکونه بیارغول شوي دي.

د نوموړي په وینا دغه سړکونه یې د سیمې د اوسېدونکو ستونزو ته په کتو سره رغولي او دا لړۍ به د دې ولایت لرې پرتو سیمو او ولسوالیو ته هم وغځول شي.

ورته مهال د یادو ولسوالیو اوسېدونکو د یادو سړکونو پر بیارغولو خوښي ښودلې او وایي، چې د یادو سړکونو په رغولو سره ورته په بېلابېلو برخو کې ګڼې اسانتیاوې برابرې شوي او له دولت څخه د ورته نورو پروژو د پلي کېدو غوښتنه کوي.